


دافغانستان اسلامي جمهوریت
دلوړو زده کړو وزارت
کندهار پوهنتون
کرهنې پوهنځی
کرنیز اقتصاد څانګه




# دکرنیز اقتصاد پراختیا

# AGRICULTURE ECONOMIC DEVELOPMENT

# اقتصادي پراختيا

اقتصادي پراختيا دهغه عمليي څخه عبارت ده چي ټولي منابع دټولني دضرورتونو درفع کولو په منظور په مطلوب ډول سره تخصيص کوي او په نتيجه کي دسړي سر عايد اومجموعي عايد په دوامداره ډول سره مخ پر زياتيدو وي چي په دي سره دټولني په سياسي ، اجتماعي او اقتصادي جوړښت باندي مثبت تغيرات رامنځته کيږي اوباالاخره دټولني دژوند سطحه لوړه او اجتماعي سوکالي او ارامي رامنځته کيږي.

# اقتصادي پراختيا

هغه شيان او خدمات چي انسانان ورته اشد ضرورت لري اودتولني زياتره غوښتني رفع کولاي سي او دقانون په اساس حق اوليت دهغوي وتوليد اوتهيي ته ورکول کيږي عبارت دي له:-

- **متوازنه غذا، مسترح اوښه لباس، صحي اومحفوظ کور لرل.**
- **دمسلک او مهارت په نظر کي نيولو سره دکارکولو چانس او فرصت لرل.**
- **دتعليم اوتربيي، صحي، ترانسپورټي، مخابراتي اونوروټولو ټولنيزو خدماتوسهولتونه اماده کول.**

# پرمختګ او یا پراختیا

پرمختګ او یا پراختیا په مجموع کې دتیر په پرتله ښه والي ته ویل کیږي.






# د اقتصادی پراختیا او ودی بنسټیز مفهومونه

- په اقتصادي علمي اثارو اوبحثونو کي بيلابيل اصطلاحات لکه اقتصادي وده ، اقتصادي پرمختيا(پراختيا)، اقتصادي پرمختګ، اقتصادي ترقي ، اقتصادي رفاه اوداسي نور سته ان داچي زياتره وخت داټوله په مترادفه توګه يودبل پرځاي استعماليږي ، خو ګڼ شمير اقتصادي پوهان وايي چي دپورته اصطلاحاتو ترمنځ دمعنی له پلوه توپير سته.



# اقتصادي پراختيا

- شومپتر وايي  چي اقتصادي پراختيا دپرمختللي اقتصادي مسايلو سره اړيکي لري.
- نومورى وايي چي اقتصادي پراختيا دلنډي مودي بدلون دى چى هغه پخوانى تعادلي حالت له منځه وړي، حال داچي اقتصادي وده داوږدې مودي دوامداره اوتدريجي بدلون دى چي دوګړو په پس اندازونو كي ديوعمومي زياتوالي څخه رامنځته كيږي.

# اقتصادي پراختیا

- پروفیسورمایراو پروفیسور بالدوین(Baldwin) وایي : اقتصادي پراختیا یوه پروسه اویا پړاو دی چي دهغي په ترخ کي دتولني حقیقي عاید په یوه اوږده موده کي زیاتوالی مومي.



# اقتصادي پراختيا

- اقتصاد پوه براون په يوه اوږده موده کي دسړی سر مادي محصول زياتوالی اقتصادي پراختيابولي.
- پروفيسوربوچانان(Buchanan) او (Ellis) وايي : اقتصادي پراختيا په پراختيايي ټولنو کي دحقيقی عايد دزياتوالي دامکاناتو دپراختيا څخه عبارت ده چي دپانګي اچونو له لاري دسړي سر حقيقی عايد دزياتوالي لار هواريږي.

# اقتصادي پراختيا

- اقتصادي پراختياته (Claim Clark) يوبل تعريف لري: داقتصادي رفاه ښه والی اقتصادي پراختياده.
- (Pago) ټول هغه اجناس او خدمات رفاه بولي چي په پيسو سره پلورل او پيرودل کيږي.

# اقتصادي پراختیا

- ځیني اقتصادي پوهان په ډیره اوږده موده کي لازم بدلون راتګ ته پراختیا وایی ، ځیني نوراقتصادي پوهان بیا په ټاکلي وخت کي دڅوند په ټولو اړخونو کي دپراختیا یا پرمختیا نومونه کاروي ، مثلآ په یوه ټاکلی وخت کي دتخنیک پراختیا، دټولنیز محصول لوړتیا ، په طبیعي سرچینو لاسبری اوداسي نور.

# داقتصادي پراختيا په رامنځته کولو کي مادي او معنوي کلتور

- هغه شمير اقتصادي پوهان چي پراختيا په تخنيکي او اقتصادي عواملو پوري تړي دمادي کلتور پلويان او هغه چي فرهنګي ، ټولنيز ، سياسي او نور پرمختګونه او پراختياوي ضرور بولي دمعنوي کلتور پلويان نومول سوي دي ،خوښه به داوي چي ووايو دټولني دپرمختګ لپاره دواړه عوامل ضرور دي.
- دکلتوري عواملوښه ګڼل دمادي عواملو په پرتله او ياد مادي عواملو ښه ګڼل دکلتوري عواملو په پرتله په بيلابيلو وختونو کي او په بيلابيلو ټولنو کي دهغوي په ځانګړو شرايطو پوري اړه لري، که چيري دژوند يواړخ غوره وګڼل سي او بل هير سي دابه نو يولويه تيروتنه وي.

# اقتصادي پراختیا

- د اقتصادی پراختیا مفهوم د ۱۸ پیړی د صنعتی انقلاب په دوران پوری اړوند کیږی.
- صنعتی انقلاب لومړی په انګلستان، فرانسه او جرمنی کی د نویو نظریاتو، ماشینونو او تکنالوژی څخه په ګټی اخیستنی سره پیل شو.
- وروسته دغه لړی په ډیری هیوادونو لکه جاپان، روسیه او امریکا کی پراخوالی وموند.

# اقتصادي پراختیا

- دادلی سیرس (Dadly seers) یو له هغو کسانو څخه وو چی د پراختیا په هکله به یی نظریی ورکولی، هغه په دی باور وو چی د پرمختګ د اثبات لپاره، یو هیواد باید وګوری چی د خلکو د شتمنیو د زیاتیدو تر څنګ آیا بیوزلي، بیکاری او نابرابری په هغه هیواد کی بدلون کړی او که نه؟
- د ده په آند یوازی په هغه صورت کی چی په دغو برخو کی ښه والی راغلی وی کولای شو ادعا وکړو چی دغه هیواد پرمختګ کړی دی.

# اقتصادي پراختيا

- په ساده توګه ويلای شو چی پراختيا په دوامداره توګه د يوه هيواد د خلکو د حقيقی عايد له زياتيدو څخه عبارت ده.
- پرمختګ د خلکو په ژوند کی دوامداره مثبت بدلون دی.

# اقتصادي پراختيا او اقتصادي وده

- هره اقتصادي پراختيا داقتصادي ودې لرونکي وي خو هره اقتصادي وده حتمأ داقتصادي پراختيا محتوى نه وي داځکه چي اقتصادي وده يو اړخ لري هغه دټولو ملي توليداتو(( General Nation Production, GNP) ملي مجموعي توليديا دهيواد په سطحه ټول محصول ) دکلني زياتوالي فيصدي ده.
- اقتصادي پرمختيا په اقتصادي جوړښت کي دبدلون سربيره هره سياسی، کلتوري ، اجتماعي او نور بدلونونه هم را اخلي ، نوځکه ويل کيداي سي چي اقتصادي وده پرته له اقتصادي پراختيا ممکنه ده ، مګراقتصادي پراختيا پرته له اقتصادي ودي ناممکنه ده.

# اقتصادي پراختيا او اقتصادي وده

- اقتصادي پراختيا يوه پراخه نومونه ده اوداقتصادي ودي دنوموني په پرتله پراخه معنى لري.
- داقتصادي ودي اصطلاح يوازي دکمي شاخصونو ښوونکي ده ، لکه دملي عايد حجم ، سړي سر کلنۍ ګټه، زيرمې اوداسی نور.
- اقتصادي پراختيا دکمي شاخصونو سربيره کيفی شاخصونه اودوګړو دژوند نور بيلابيل اړخونه هم را اخلي لکه دژوند دوسايلو او اسبابو چمتو والي ، په کورونو کي ديخچال ، ټلويزيون اونورو شته والی ، دبريښنا، روغتيا ، اوبو ، ټليفون اونوروچمتو والی اوداسي نور.

# اقتصادي پراختيا او اقتصادي وده

- **د پروفيسور براون اولويس له نظره :ـ**
- براون وايي اقتصادي وده(Economic Growth) او اقتصادي پراختيا يا اقتصادي پرمختيا( Economic Development) دواړه يوشان بدلونونو ته اړتيا لري چي دغه بدلونونه ترپخوا غوره اونوي وي.
- ليويس داهم وايي چي كه داقتصادي ترقۍ پرځاي باندي اقتصادي وده وليكل سي او يا داقتصادي ودي پرځاي باندي اقتصادي ترقي وليكل سي كوم تغير نه كوي.
- داپه دي معنی سره دی چي نوموړي براون اولويس داقتصادي ودي او اقتصادي ترقۍ ترمنځ چنداني فرق نه كوي.

# اقتصادي وده او اقتصادي ترقي

- اقتصادي وده دااقتصادي ترقۍ سره یوه اندازه توپیر لري  په دي معنی چي اقتصادي وده( Economic Growth) دکلي عاید دزیاتوالي او اقتصادي ترقي (Economic Progress) دسړي سر ګټي سره سروکار لري.

# اقتصادی پرمختګ

- **اقتصادی پرمختګ:** په یوه هیواد کی د شیانو د تولید او خدماتو دوامداره زیاتوالی دی چی په پایله کی د تولید اغیزمن عوامل لاسته راځی.
- د تولید د عواملو اغیزمنتوب د نوی تکنالوژی څخه د کار اخیستنی، د تولید د چارو د سمبالولو او د ښه مدیریت په پایله کی زیاتیږی.
- که د تولید د وخت په تیریدو سره ملی عاید، عمومی عاید، لګښت، سپما او پانګه اچونه په یوه هیواد کی زیات شی دغه پیښی ته اقتصادی وده وایی.

# اقتصادی پرمختګ

د بډایو هیوادونو د اقتصادی پرمختګ لړۍ چی د کوزنت په واسطه پیژندل شوی د شپږو ګډو ځانګړتیاوو درلودونکی دی.

- د وګړو او عمومی عاید لوړه وده.
- د تولید د عواملو د بازدهي لوړه کچه.
- په اقتصاد کی د جوړښتی بدلونونو لوړه درجه.
- د آیدیولوژیکی او د ټولنیزی بڼی د بدلون لوړه درجه.
- په نړیوال مارکیت کی نفوذ.
- د نړی په یو پر دریمه برخه کی د اقتصادی ودی محدودیدل.

# د اقتصادی ودی او اقتصادی پرمختګ توپیر

- اقتصادی پراختیا د بیلابیلو اقتصادی، ټولنیزو، فرهنګی او کلتوری برخو درلودونکی ده، د اقتصادی پرمختګ په لړ کی د یوه هیواد اقتصادی او تولیدی ظرفیت لوړیږی.
- خلک بنسټیز خدمتونه لکه ډوډی، هستوګنځی، ښوونی او روزنی، روغتیا، صحی اوبو، کاری فرصتونو، بریښنا او لاډیرو اطلاعاتو ته لاسرسی پیدا کوی.
- په نتیجه کي د یوه هیواد له سرچینو څخه مطلوبه او مناسبه ګټه اخیستل کیږی.

# د اقتصادی پراختیا او اقتصادی ودي توپير

- اقتصادی پراختیا لږ تر لږه د عمومی عاید د زیاتیدو لپاره اړینه ده.
- اقتصادي پراختیا د اوږد مهال لپاره پریکنده بیوزلي او نابرابری په لړ کی نیسی.
- اقتصادی پراختیا د اقتصادی ودی څخه پرته شونی نه ده او اقتصادی وده د مثبت او دوامداره بدلونونو او د لوی اقتصاد ټول بدلونونه په لړ کی نیسی.
- د اقتصادی پراختیا په پایله کی د خلکو د ژوند کچه لوړیږی.
- پراختیا د اقتصادی اړخ درلودونکي ده څکه چی په دي لړی کی د مادی نعمتونو د تولید زیاتول د تولید په ګټورو عواملو او ټکنالوژی سره هڅول کیږی.

# د اقتصادی پراختیا او اقتصادی پرمختګ توپیر

- اقتصادي وده په پرمختللو هیوادونو کي تر استفادي لاندي تولیدي منابعو پراختیا اوبنه او مناسب استعمال په واسطه سره پرمختګ کولاي سي.
- اقتصادي وده دپرمختللو هیوادونو دستونزو سره سروکار لري.
- اقتصادي وده مقداري یاکمي تغیرات په اقتصاد کي رامنځته کوي.
- اقتصادي وده په اقتصاد کي دکوچنیو تغیراتو سره سرو کار لري.
- اقتصادي وده داجناسو او خدماتو دمحصول دحقیقي زیاتوالي سره سرو کار لري لکه په عاید پس انداز اوپانګونه کي زیاتوالی.

# داقتصادي پراختيا دمطالعي ارزښت

- دملتونو دشتمنيو (ثروت) دمطالعي پرځاي دملتونو دغربت مطالعه هم ډيره ضروري ده.
- په پرمختيايي هيوادونو کي نفوس ورځ په ورځ زياتيږي پانگه يي لږه، سږي سرعايد يي لږ او دتکنالوژۍ له پلوه وروسته پاتي دي ، له بلي خوا دپرمختللو او پرمختيايي هيوادونو ترمنځ توپير ورځ په ورځ زياتيږي ، ددوي وروسته پاته والی په يوې لويي سياسي ستونزي باندي اوښتی دی ان داچي ددوي خپلواکي يي له گواښ سره مخامخ کړي نو دوي ته ډيره ضرور اومهمه خبره ده چي ژر پرخپلو ستونزو باندي برى ومومي او خپلې زيرمې او شتمنۍ خپلواکي،ملي هويت او پرتم وساتلاي سي.

# دپرمختګ عمده موخي

- د تولید زیاتول او د خلکو د اساسی اړتیاوو لکه ډوډی، هستوګنځی،روغتیا اوناروغیوڅخه مصؤنیت پراخول.
- د ډیریو خلکو د ژوند د کچی لوړول، یعنی دعاید د زیاتولو سربیره د کار د ځای چمتو کول، ښه روزنه او کلتوری او انسانی ارزښتونو ته ډیره پاملرنه کول.
- خلکو ته د اقتصادی او ټولنیزو ټاکنو دانتخاب فرصتونه ورکول.

# دکرهڼي ونډه او دهغي دموقعيت بدلون

- هغه ستراتیژی چی د یوه هیواد دکرهڼی د پراختیا لپاره کارول کیږی، د هماغه هیواد د شته سرچینو او د پراختیا د پړاوونو تراغیزی لاندی راځی.
- . د یوه هیواد د پراختیا مطلوبه لاره نسبت بل هیواد ته توپیر لری، خو د یو ناسم سیاست ټاکل چی د هیواد د ودی پړاوونه او زیرمی په پام کی ونه نیسی کیدای شی د ناکامۍ سره مخ شی.

# دکرهڼي ونډه او دهغي دموقعیت بدلون

- د پرمختګ په لومړی پړاو کی د وګړوډیره فیصدي په کرهڼه بوخت وي ځکه چی د وګړو چټکه وده او د بشری ځواک کم مولدیت د دی لامل کیږی چی ګڼ شمیر وګړی د کرهڼی په برخه کی کار وکړی. په دی پړاو کی له کرهڼی څخه ډیره اندازه عاید لاسته راځی کله چی پرمختګ کیږی وګړی وده کوی او عمومی عواید زیاتیږی چی د عاید له زیاتیدو سره د خوړو توکو ته تقاضا زیاتیږی. چی ددی فشار له امله باید یا تولید زیات شی او یا واردات زیات شی.

# دکرهڼي ونډه او دهغي دموقعيت بدلون

- په مخ پرودی هیوادونو کی کرهڼی ډیری سرچینی ځانته ځانګړی کړی دی او ډیره کمه اندازه سرچینی یی د خوړو توکو او ځینو نورو وارداتو ته پریښی دی،مګر د کرهڼی ظرفیت چی وکولای شی بشری خواک چی مخ په زیاتیدو دی چي جذب کړی هغه محدود دی، داځکه کله چی د عاید زیاتیدل دوام ولری نو غیر کرنیزو توکو ته هم غوښتنه زیاتیږی، له دی امله اقتصادی پراختیا د اقتصادی جوړښت د بڼی بدلون ته چی د غیر کرنیز سکتور پراختیا ده اړتیا لری.

# دکرهنې ونډه او دهغې دموقعيت بدلون

- د کرهنی د پراختیا یوه کیلی د کافی اطلاعاتو بهیر او سمون دی چي په کلیوالي ټولنو کی اقتصادی فعالیتونه سیمه ایز دی او معلوماتو ته ټول لاسرسی نه لری.
- کله چی پراختیا دوام پیدا کوی د اقتصادی سکتورونو تر منځ اړیکی زیاتیږی او اقتصادونه پیچلی کیږی،اطلاعاتو ته اړتیا زیاتیږی خو د اطلاعاتو دودیز لیږد نشی کولای د دی اړتیاوو ځوابګوی وی.
- هغه هیوادونه چي کلیوالي ټولني يي اطلاعاتو ته ډیر لاسرسی لری له دی وضعی څخه د کرهنی د پراختیا او د اقتصاد په برخه کی ډیره ګټه وړی

# دکرهڼي ونډه او دهغي دموقعيت بدلون

- دډيرو مخ پرودي هيوادونو دوروسته پاته والي يولامل هم دکرني دسکتور وروسته پاته والي ګڼل کيږي.
- دمخ پر ودي هيوادونو په اقتصادي بدلونونو کي اړين شرط دسنتي يارواجي کرهڼي بدليدل په سوداګريزه کرهڼه باندي بلل کيږي.

# دکرهڼي ونډه او دهغي دموقعیت بدلون

- په ډیری مخ پرودی هیوادونو کی د سوداګریزی کرهڼی نشتون یا ضعیف والی د لاندی عواملو له کبله دی:
- یو شمیر مخ پر ودی هیوادونه نامساعد جغرافیی محدودیتونه لري لکه د اوبو کمښت، د حاصلخیزی ځمکی کمښت او د ډیری ګرمی، یخنی سره مخ دی چی دغه محدودیتونه د کرهنیز تولید د کچی د لوړیدو په مخ کی خنډ ګرځی.
- د ځینو ټولنیزو ځانګړنو شتون لکه د ټولنیزو جوړښتونو مالکیت په ځمکه، په کلیو کی بوختیایی ډلی د نیمه معیشیتی ژوند د دوام او په کرنیز تولید پوری د اړوند ټولنو په منځ کی مهم رول ددي لامل ګرځی چي دسوداګریزي کرهڼي مخه ونیول سي.

# دکرهڼي ونډه او دهغي دموقعيت بدلون

- په ډيرى هيوادونوکى د داخلى بازارونو محدوديدل چى په خپله د توليد په راکميدو اغيزه لرى او همدا شان د معشيتى اقتصاد لاسبرى په دغو هيوادونو کى د سوداګريزى کرهڼى د رواجيدو مخنيوى کوى.
- د ليږد راليږد او ارتباطى شبکو ضعف په ځانګړى توګه د دغو هيوادو په دولت کى د سوداګريز اقتصاد د پراختيا په لار کى عمده خنډ ګڼل کيږى.
- د کرهڼى او مالدارى نويو روشونو او تکنالوژيو ته د کروندګرو نه لاسرسى يا ناکافى لاسرسى هم دسوداګريزي کرهڼي دمخنيوي سبب کيږي.

# د اقتصادی پرمختګ د اندازه کولو واحدونه

- دا چی پراختیا یوه څو اړخیزه لړی ده سنجونه یی هم آسانه کار نه دی خو په هر حال د اقتصاد پوهانو د پراختیا د کچی د اټکل کولو او سنجولو لپاره بیلابیلی لاری چاری وړاندی کړی دی.
- **ملی ناخالص عاید [( Gross National Product (GNP]:** ناخالص ملی عاید عبارت دی دکالیو د پولی ارزښت او ټول هغه بشپړ خدمات چی د یوه کال په موده کی په یوه هیواد کی تولیدیږی.
- **سړي سر ملی ناخالص عاید:** که د یوه هیواد حقیقی ناخالص ملی عاید د هغه هیواد په وګړیو وویشل شی عمومی حقیقی عاید تری تر لاسه کیږی.

# د اقتصادی پرمختګ د اندازه کولو واحدونه

- د اقتصادی پرمختګ د سنجش نوری لاری – د ژوند فزیکی ښرنګوالی او د هغه د بنسټیزو اړتیاوو لاري دي:
- هغه معیارونه چی په دی روش کی تری ګټه اخیستل کیږی په لاندي ډول سره دي:
- ډیرو خوراکی توکو ته لاسرسی.
- تعلیمی چوپړتیاووته ډیر لاسرسی.
- روغواو صحي اوبوته لاسرسی.
- روغتیایی چوپړتیاوو ته لاسرسی.
- هستوګنځی.

# د اقتصادی پرمختګ د سنجولو لار د ژوند د فزیکی څرنګوالی پر بنسټ

- په دی روش کی له دریو برخو څخه کار اخیستل کیږي:
- د ژوند توقع
- د نوزادانو د مړینی کچه
- د سواد کچه

# د اقتصادی پرمختګ موخې

- بنسټیزو اړتیاوو ته لاسرسی او د هغوی د شتون ډیربښت
- د ژوند د کچې ښه کول، لوړ عاید، دندی، لوړه ښوونه او روزنه، کلتوری او انسانی ارزښتونو ته زیاته پاملرنه.
- خلکو او ملت ته د ټولنیزو او اقتصادی ټاکنو د حدودو پراختیا د آزادی له لاری.

# دیوهیواد اقتصاد په کوموعواملو پوري اړه لري؟

- دیوهیواد داقتصاد دپراختیا لپاره دوه ډوله فکتورونه ډیرمهم ګڼل کیږي چي هر فکتور داقتصاد په پراختیا او اقتصادي ترقۍ کي پرخپل ځاي باندي ډیر مهم بلل کیږي.
- دیو هیواد داقتصاد دپراختیا لپاره دوه ډوله فکتورونه مهم دي :-

A- داقتصادي پراختیا لپاره اقتصادي شرایط

B- داقتصادي پراختیا لپاره غیر اقتصادي شرایط

# A- داقتصادي پراختيا لپاره اقتصادي شرايط

- ديوهيواد په اقتصادي پراختيا كي داقتصادي فكتورونو رول قطعي دي ، دسرمايي ثابتوالى اودسرمايي دراتلولواندازه په اكثره وختونو كي داسوال پيداكوي چي هيواد به پرمختګ وکړي اوكنه؟
- اقتصادي ګټه كولاي سي چي ښاري نفوس اوخلګ حمايه کړي ، دخارجي تجارت وضع اوداقتصادي سيسټم وضعيت په اقتصادي پراختياكي دنورو فكتورونو په ځير مهم دي.

# ۱ـ دپانګي تولید اویا دسرمایي جوړښت

- چي په دي برخه کي ځمکه،بیلډینګونه،ماشینري،ټرانسپورټیشن،اوارتباطی ټکنالوژي(مخابرات) شامل دي.
- داقتصاد په لوړولو اویا پراختیا کي دسرمایی ستراتیژیک رول دمعمول سره سم په اقتصادي پراختیا کي پیژندل سوی دی چي دا دیوهیواد داقتصادي پراختیا په لوړولو کي یو عمومي اومنل سوی فکتور ګڼل کیږي چي کولای سي داقتصادي پراختیا دسرمایه ګذاری په نظرکي نیولو سره دوارداتو اوعایداتو ترمنځ ارتباط قایم کړي.
- اقتصاد پوهانو په حقیقت کي داقتصادي حالت خرابتیادااقتصاد دپراختیا لوي خنډ ګڼلی دی اوهمدارنګه داقتصادي پلان نشتون داقتصادي حالت خرابوالی اودعایداتو دکمښت ستونزه رامنځته کړي.
- په هرحالت که چیري یو هیواد وغواړي چي ترقي وکړي نوباید په اقتصادي برخه کي په لوړه پیمانه سره سرمایه ګذاري وکړي اونوموړي سرمایه ګذاري یي باید دپلان مطابق وي.

# ۲ـ طبیعي سرچیني

- دیو هیواد داقتصادي پراختیا اصلي فکتور عبارت دطبیعی منابعو څخه دي،طبیعی منابع هغه دي کوم چي دهغوي څخه محصول اوپیداوار په لاس راځي چي هغه دځمکي پرمخ او یادځمکي پرسطحه وي، دځمکي پرمخ په طبیعی منابعو کي نباتات، اوبه او طبیعی منظری شاملي دي، ترمځکي لاندي او یا په مځکه کي پټ طبیعي منابعو کي تیل، طبیعي ګاز، فلزات، غیر فلزات او منرالونه شامل دي.

# ۳- درزاعتي محصولاتو څخه دعايد دلاسته راوړلو په منظور دمارکيټ پيداکول

- ديوهيواد داقتصادي پراختيا له نقطه يي نظره دزراعتي محصولاتو زياتوالی دتوجه وړ دی مګر ترهغه بيا ډيره مهمه وزراعتي محصولاتو ته بازارموندنه هم مهم ګڼل کيږي.
- دکرهڼي څخه دلوړ عايد دلاسته راوړلو دپاره بايد کرهڼه عصري اودکرهڼي سيستم لوړ کړل سي يعني دوديزه کرهڼه په سوداګريزه کرهڼه باندي تبديل کړو ترڅو چي ډير او لوړ عايد په لاس راسي چي په دي ډول سره ددي سيستم لوړيدل دښاري نفوس دژوند په ډول کي تغير راولي او همدارنګه دخلکو دژوند سطحه هم ورسره لوړيږي.

# ۴ـ دخارجي تجارت وضع

- مترقي یاپرمختللي هیوادونه باید نه یوازي پرسرمایه ګذاري باندي ډیر کوښښ وکړي بلکه وصنعتي تولیداتوته هم ډیره توجه اوپاملرنه وکړي داځکه چي دغه هیوادونه باید خپله صنعتي برخه دوخت مطابق لوړه او پرمخ بوزي اودوي باید غلي داني تولید کړي اوخپل اولني تولیدات یا دضرورت وړ تولیدات مهم او اصلي وګڼي ترڅو چي دسوداګرۍ نظام قایم اوپه ښه ډول سره پرمخ ولاړ سي.

# ۵- اقتصادي سيستم

- ددريمي نړي هيوادونه هڅه کوي چي خپل اقتصاد پياوړی کړي دوي نه سي کولاي چي په زياته پيمانه اقتصادي ازادئ سره خپل اقتصاد پياوړي کړي،او همداشان دوي نه سي کولاي چي ضروري منابع برابري کړي چي داقتصادي پراختيا سبب سي هغه هم خاصتأ په هغه طريقې سره چي په خارجي تجارت پوري اړوند دي.
- دوي اوس دوه انتخابه لري:ـــ
- الف :ـ دوي کولاي سي چي دسرمايه دارئ دنظام څخه استفاده وکړي چي داطريقه يو ښه دمارکيټ دپيداکولو سيسټم ته ضرورت لري او دا ديو هيواد په اقتصادي پاليسئ پوري ارتباط لري.
- ب :ـ ښه اقتصادي پلانونه.

# B- داقتصادي پراختيا لپاره غير اقتصادي شرايط

- داقتصادي پراختيا دپاره غير اقتصادي شرايط په اقتصادي پراختياکي ډير مهم دي ، داقتصادي پراختيا لپاره غير اقتصادي شرايط په اقتصادي پراختيا کي په غير مستقيم ډول سره ډير تأثير ګذاره دي او هريو يي پرخپل ځاي باندي ډير مهم او دپام وړ ګڼل کيږي .

# ۱ـ بشري قوه

- بشري قوه په اقتصادي پراختيا کي يو ډير مهم فکتور دی ،يو شخص کولاي سي چي په توليداتو کي مهم رول ولوبوي ، که په يو هيواد کي با مهارته کاريګرموجودوي نو په نوموړي هيواد کي په لوړه او ښه کچه سره اقتصادي پراختيا رامنځته کيداي سي.
- په هغه هيوادونو کي چي کاريګر يي بيسواده او بي کسبه وي دايوه ناروغي ده او په عموم کي داهيوادونه ډير ضعيف اقتصادلري او نه سي کولاي چي په اقتصادي پراختيا کي مؤثر رول ولوبوي داځکه چي که خلګ پوهه ولري نو په مديريت کي مهم رول لري او که بيسواده وي نو هيڅ مؤثر رول به ونه لري.

# ۲- تخنيکي پوهه او دعامه پوهاوي څرنګوالی

- دايوڅرګند حقيقت دي چي تخنيکي مهارت څومره مؤثريت په اقتصادي پراختيا کي لري ، ساينسي او ټکنالوژيکي پو هه کولاي سي چي ديوشخص توانايي په زياته اندازه سره ورپورته کړي چي دمهمو تخنيکونو په کاروني سره کولای سي دتوليداتو کچه ورلوړه کوی.
- ساينس اوټکنالوژي په اقتصادي پراختياکي يو مهم فکتور ګڼل سوی دی او تراوسه پوري هم دتوجه وړدي،اقتصادي او تخنيکي مهارتونه کولاي سي چي اقتصادي پراختيا رامنځته کړي.

# ۳ـ سیاسي آزادي

- د پرمختګ اووروسته پاته والی پروسه په خپل منځ کي ارتباط سره لري،دابه غلطه وي چي دوي دواړو ته په یوه نظر وکتل سي،موږ په دي باندي پوهیږو چي دهند، پاکستان، بنګله دیش ، سریلانکا، مالیزیا، کینیا او بعضي نورهیوادونه چي په تیر وخت کي دانګلیس مستعمرې وي ، چي ددوي اقتصادي پراختیا مستقیماً دانګلینډ په اقتصادي ترقۍ او پراختیا پوري ارتباط لري او انګلینډ په ډیرې بیرحمۍ سره ددوي اقتصادي ګټي خوړلي.
- Dada Bhai Nairobi په خپل کلاسیک نظر سره په وضاحت سره څرګند کړي دي چي دپورته هیوادونو په اقتصادي بیوزلۍ او ټیټ اقتصاد کي انګلیس مهم رول درلودی چي دیادو هیوادونو اقتصاد یي ورمحاصره کړی ؤ.

# ۴- اجتماعي ټولنه (ټولنيز نهادونه)

- بعضي وختونه داقتصادي پراختيا دتيز والي په پروسه کي دخلکو برخه اخيستنه ډيره مهمه وي. خلک اکثره وخت علاقه لري چي په هغه پروسه کي ګډون وکړي کوم چي دوي داسي فکر کوي چي ودوي ته پکي يوه اندازه ازادي ورکول سوي ده اويوه څه اندازه ګټه پکي ورته رسيږي .
- دخلکوعمومي ګډون دترقۍ پروسه تيزه کوي، داسي ويل کيداي سي چي دخلکو ګډون اقتصادي پراختيا رامنځته کوي .

# ۵ـ فساد

- فساد دپرمختلونکو هیوادونوپه پرمختګ کي یومنفي عامل ګڼل سوی دی ترهغه چي دغه هیوادونه چي فساد یي دخپل اداري سیستم څخه نه وي لیري کړی ، داطبیعی ده چي تجاران اونور اقتصادي قوي برخي به ددوي طبیعي زیرمي دخپلو غوښتنو سره سم استعمال کړي.
- منظم سیستم یي همدارنګه په صحیح او سمه توګه ندی استعمال سوي او تضمین یي هم شتون نه لري(په نړیواله سطحه اعتبار نه لري)،په یادو هیوادونو کي زیات مالیات ددولتي مامورینو وجیبوته لویږی او ددولت وبودیجې ته نه ځي.

# ۶ـ دپراختیا غوښتنه

- اقتصادي فعالیتونه یوتخنیکي پروسه نه ده ، پراختیا په اصل کي دیو هیواد دخلکو غوښتنه ده ،که چیري په یوه هیواد کي اکثریت دپراختیا غوښتونکي نه وي نو هلته دترقۍ کمه طمع کیداي سي.
- Richard T .Gill, په نظر پراختیا یو میخانیکي پروسه نه ده چي په آسانۍ سره ئي فکتورونه سره وتړل سي بلکه داپه نامحدوده توګه دخلکو ګډون دی او دټولو خلکو غوښتنه ده چي په یوه هیواد کي دمهارت دکیفیت دلوړوالي اوپراختیا سبب ګرځي.